تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة
# فی
# حل المسائل المختلفة

من ملفوظات

شیخ الاسلام سلطان المناظرین نابغۃ العصر شیخ القرآن والحدیث شہید ابن شہید

ابو العزیز غلام حضرت غلام الخنفی شہید عرف نابغۃ نقشبند اللہ

مُحرر ومُرتب

سید محمد ثواب

ابن سید اسماعیل باچا صاحب

اوله حصه

ناشر

مُدرسة حُذیقة الاحناف

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# مسئلة القرأة عند الميت

## از تشریحات النابغه

## مسئلة القراءة عند الميت :

قراءت على الميت په مړي باندې د قبر سر او خپو ته قراءت متعين كول يا غير متعين كول يا هسې جمعه غفيره لاړه شي د هديرې خوا كې تلاوت كوي دا څنګه دي جائز دي او كه نه دي جائز ؟

په دې كې رايه د امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ او د امام احمد قول اخيرېې راجح هغه دادى چې قراءت على القبر جائز دي زمونږ د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ او د يارانو اختلاف دي ، امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ نه قول د كراهيت منقول دي د قراءت على القبر او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ اللَّهُ او امام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ نه قول د استحباب منقول دي او فتوى په قول د امام ابي يوسف او امام محمد رَحِمَهُمَا اللَّهُ په قول باندې ده ولې وايي ځكه لورود الاثار فقهاء وايي دلائل لري نو زمونږ فقه حنفي كې فتوى په قول د امام محمد او امام ابي يوسف رَحِمَهُ اللَّهُ باندې ده چې جواز دي او استحباب دي او دغه د امام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ مذهب هم دي قول اخير .

(۱) حديث : المعجم الكبير للطبراني جلد ۱۴ صفحه ۱۰۸ :

حدثنا ابو اسامة عبدالله بن محمد بن ابي اسامة الحلبي حدثنا ابي ح تحويل د سند .

وحدثنا ابراهيم بن دحيم الدمشقي حدثنا ابي ح دريم تحويل د سند ، وحدثنا الحسين بن اسحاق التستري حدثنا علي بن بحر قالوا . دلته اشتراک راغې .

حدثنا مبشر بن اسماعيل حدثني عبدالرحمن بن العلاء بن اللجلاج عن ابيه قال قال لي أبي يا بني . پلار راته وويل اى زما بچيه .

إذا أنا مت . چې كله زه مړ شومه .

فالحدني . لحد راته جوړ كړه .

فإذا وضعتني في لحدي . چې لحد كې دې كيښودم .

فقل بسم الله وعلى ملة رسول الله . وه مې سپاره .

ثم سن عَلَيَّ الثَّرى سناً . بيا راباندې خاوره برابره كړه مسنمه يې كړه .

ثم اقرأ. بیا ولوله.

عند رأسي بفاتحة البقرة وخاتمتها. سر زما ته اول د بقرې او آخر د بقرې راته ولوله.

فاني سمعت رسول الله ﷺ يقول ذلك. ما د نبي عليه السلام نه اوریدلي چې دا سې يې فرمايل.

دا حديث د سند په لحاظ سره صحيح دي څوک پرې جرحه نه لري البته مخالفين په دې کې يوه جګړه مونږ سره کوي چې دا موقوف دي او صحيح دادی چې دا موقوف دي مرفوع نه دي.

(۲) حديث: همدغه روایت سنن الکبری للبيهقي رااخیستې په جلد ۴ صفحه ۵۶ کې:

عن عبدالرحمن بن العلاء بن اللجلاج عن أبيه إنه قال لبنيه إذا أدخلتموني قبري فضعوني في اللحد وقولوا بإسم الله وعلى سنة رسول الله وسنوا عليّ التراب سناً وأقرؤا عند رأسي اول البقرة وخاتمتها فاني رأيت ابن عمر يستحب ذلك.

ما ابن عمر رضي الله عنه وليد چې دا يې مستحب ګڼله.

داد هغې معارضه کې وهابیان پیش کوي وايي دا حديث دې چې ما ابن عمر رضي الله عنه وليده چې دا يې مستحب ګڼله او هغلته وايي چې ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي وه چې داسې ويلي وه نو لهذا وايي ترجیح دې لره ده دا اوس د دوي رايه نه ده کنه د دې روايت له هغه مخکني روايت سره څه معارضه ده مثلاً ابن عمر رضي الله عنه نه ما ته راورسيدل چې مستحب يې ګڼله دې صحابي نه راورسيدل چې وصيت يې کړې دي صحابي وايي چې ما نبي عليه السلام نه اوريدلي چې داسې ويلي.

زه به مثال کې ځان درته پیش کړم ما نه تا تپوس د قراءت على القبر وکړو زه درته يو ځل دا حديث پیش کوم چې لجلاج رضي الله عنه فرمايي چې ما د نبي عليه السلام نه اوريدلي دي چې داسې ويل صبا هغه بل راځي ما نه تپوس کوي چې قراءت على القبر څنګه دي زه جواب ورکوم چې ابن عمر رضي الله عنه يې مستحب ګڼي.

نو اوس دا معارضه شوه دا خو معارضه نه ده کنه ابن عمر رضي الله عنه يې مستحب ګڼي هغه وايي ما د نبي عليه السلام نه اوريدلي دي بل حديث به راشي وايي ما د ابن عمر رضي الله عنه نه هم

اوریدلي دي دې کې خو څه معارضي نشته چې ته رجحان ورکړې او یو ته په بل ترجیح ورکړې ځکه ترجیح په وخت د معارضه کې راځي چې کله معارضه راشي د یو حدیث له بل سره او داسې ټکراو راشي چې جمع یې نه کیږي دلته خو تیاره جمع جوړه ده.

دې صحابي د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه دا وصیت اوریدلې دي ځکه یې وصیت بل ته کړې دي د عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د استحباب فتوی ورته راغلې ده او د عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه یې بذات خود خپله اوریدلې هم دي که د هغه قول پیش کوي که دا فتوی پیش کوي که د نبي اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وصیت پیش کوي هیڅ ټکراو او معارضه دلته نشته دي.

نو ترجیحات مه ورکوي چې وهابیان وایي دا موقوف دي او دا راجح دي څه چې موقوف هم شو نو وهابیان خو دې ته بدعت وایي او صحابي چې کوم عمل وکړي هغې ته بدعت کله ویل کیږي په قُرونو ثلاثوو کې چې اصل ونه لري هغه بدعت وي نو دلته خو په قرنِ ثاني کې اصل پیدا شو د صحابوو زمانه کې اصل پیدا شو نو بدعت څنګه شو.

(۳) حدیث: دارنګې الدعوات الکبیر للبیهقي جلد ۲ صفحه ۲۹۷ کې باب لګوي:

باب ما جاء في قراءة القرآن عند القبر. بیا هم دغه مذکور حدیث پیش کوي:

**عن عبد الرحمن بن العلاء بن اللجلاج عن ابیه انه قال لبنیه إذا أدخلتموني قبري فضعوني في اللحد وقولوا بأسم الله وعلى سنة رسول الله وسنوا عليّ التراب سناً واقرؤا عند رأسي اول البقرة وخاتمتها فأني رأيت ابن عمر يستحب ذلك.**

عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته مستحب ویلي او ته ورته بدعت وایي او دا هماغه عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دي چې د رفع الیدین په حدیث کې څومره مونږ کافر کوي هم ورباندې او ګمراه کوي مو هم ورباندې او د حدیث مخالف هم مونږ ګڼي سند خو قوي ده په سند جرحه نه کوي.

د صحت د سند دوي هم قائل دي خو دوي وایي چې دا موقوف دا ابن عمر او للجلاج دي دا د دوي فتوی ده او بیرته دوي یو اصل هم جوړ کړې چې **هذا موقوف لا حجة في الموقوفات.**

ابن تیمیه وایي چې تلاوت علی القبر نه وه په زمانه د سلفو کې نو عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او لجلاج رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سلف نه دي سلف چا ته وایي په دې خبره د ابن تیمیه خوله جاري ده

لنده دا خبره کوي چې دا په زمانه د سلفو کې نه وه .

(۴) الاربعين المتباينة السماع د عسقلاني جلد ۱ صفحه ۸۵ :

ما اخرجه الخلال في كتاب الجامع له قال حدثنا العباس بن احمد الدوري قال سألت احمد بن حنبل .

ما د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ نه تپوس وکړو .

تحفظ في القراءة على القبور شيئًا قال لا . په قراءة على القبور کې درته کوم حديث ياد دي .

هغه داسې زمانه وه چې کتابونه ، نه وه ليکل شوي چې کله به دوي يو حديث پيدا کړو ديو چا سره او هغه جزيه به معروفه وه ټولو خلکو به کوله خو دليل به چا ته نه وه معلوم او د يو عالم سره به دا حديث پيدا شو بس هغه عالم به ډير مقبول وه چا به شونډې ورته ښکلولې او چا به ورته لاسونه د ادب نه ښکلول نو قراءة على القبور خو معروف وه هغه زمانه کې هر چا کوه لکه اوس چې کيږي خو دليل نه وه چا سره نو له دې نه تپوس کوي چې ته قراءت على القبور کې څه حديث لرې هغه ورته وويل چې نه .

قال : عباس بن احمد الدوري وايي .

وسألت يحيى بن معين . بيا له ده نه لاړم يحيى بن معين ته هغه ته مې وويل چې ته په قراءت على القبور کې څه حديث لرې او که نه .

فحدثني عن مبشر بن اسماعيل الحلبي قال حدثني عبد الرحمن بن العلاء بن اللجلاج عن ابيه قال قال اني إذا أنا متُّ فضعني الخ .

هغه حديث چې پاس تير شو وايي دا حديث را ته يحيى بن معين پيش کړو .

واقرأ عند رأسي بفاتحة الكتاب و أول البقرة و خاتمتها فاني سمعت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يوص بذلك ثم اخرج الخلال من وجه أخر ان أحمد كان في جنازة .

دې په يوه جنازه کې وه .

فلما دفن الميت . هر کله چې دفن شو مړی .

جاء رجل . یو سړي راغلو .

ضرير . په سترګو ړوند وه حافظ وه .

يقرأ عند القبر . قبر سره يې تلاوت كوه ګوره دې زمانه کې دا تلاوت رواج وه .

فقال له احمد يا هذا . د امام احمد سره دلیل نه وه هغه ورته وايي .

إن القراءة عند القبر بدعة . قراءت له قبر سره بدعت دي .

فقال له محمد بن قدامة . ورته وویل محمد بن قدامة .

يا أباعبدالله ما تقول في مبشر الحلبي . مبشر حلبي کې دې رايه څه ده .

قال ثقة فذكر له عنه هذا الحديث . د حديث هغه سند يې بيان كړو .

امام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ ته چې حديث ورسيده .

فقال له أحمد إرجع إلى الرجل وقل له يقرأ . ورشه هغه حافظ پسې ورته ووايه چې تلاوت كوه نو امام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ اهل حديث وه چې حديث ورته ورسيده بې چون چرا يې حديث قبول كړو او د خپلې خبرې نه يې رجوع وكړه ورشه هغه سړي ته ووايه چې تلاوت وكړه .

نو ځای په ځای ابن تيميه خلكو ته دوكه وركوي او وايي چې امام احمد هم د قرأت على القبور منكر دي .

نو هغه الفاظ يې نقلوي چې كوم ځای کې امام احمد بدعة ويلي وي نو امام احمد قرأت منكر وه اولاً آخراً چې حديث ورته ورسيدو نو واپس يې امر كړې دی چې ورشه تلاوت كوه .

ابو بكر ابن خلال يو كتاب ليكلي په نوم د القراءة عند القبور باندې جلد ۱ صفحه ۳ :

واخبرني العباس بن محمد بن احمد بن عبدالكريم قال حدثني ابو شعيب عبدالله بن الحسين بن احمد بن شعيب الحراني من كتابه قال حدثني يحيى بن عبدالله الضحاك البابلتي حدثنا ايوب بن نهيك الحلبي الزهري مولى آل سعد بن ابي وقاص قال سمعت عطاء بن ابي رباح

المكي قال سمعت ابن عمر قال سمعت النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يقول : اذا مات احدكم فلا تجلسوا واسرعوا به الى قبره .

کله چې يو کس ستاسو نه مړ شي نو هغه مه حصاروي ډير جلتي وکړي په ده باندې الى قبره .

وليقرأ عند رأسه بفاتحة الكتاب . ودې لوستلې شي د سر دده سره بفاتحة البقرة .

وعند رجليه بخاتمتها في قبره . او خپو ته دې آخر د فاتحې ولولي في قبره .

هغه مخکې حديث کې دا نه وه راغلې چې خاتمه يې په رجلينو کې ولولي دا راغلي وه چې د فاتحې اول آخر ولولي او دا حديث تصريح ددې کوي چې نه دا خاتمه به يې رجلينو ته لولي داد عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال سمعت النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخکې حديث کې تير شو چې ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا مستحب ګڼله خو دا استحباب يې له ځان نه وه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه يې اوريدلي وه .

## اقوال الفقهاء وعلة قول أبي حنيفة رَحِمَهُ اللهُ:

دې نه اخوا د فقهاو عبارات او د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ د قول علت لټوي چې ده ورته ولې مکروه ويلې دي وايي امام صاحب ورته مکروه ځکه ويلي چې هغه ته دغه اثر نه وه رسيدلې چې دا کوم حديث دي بعضې مسئله کې روايات کم وي نو کتب د حديثو هم نه وه چې ټول يې د نظر نه تير کړې واى .

نو وايي دا روايت ورته نه وه رسيدلي او ده د خپلې رايې موافق دا خبره کوله چې :

اهلها جيفة ، اهل ددې چې عام خلک دي وراسته شي خاوري شي نو ته هلته تلاوت د څه لپاره کوي دده امام صاحب علت نه دا معلوميږي چې دې د اولې ورځې تلاوت مخالف هم نه دي ځکه هغه وخت کې خو جيفه نه ده .

په اوله ورځ خو روغ جوړ ده دده له علت نه معلوميږي چې دا روسته وختونو کې قبر ته تلل تلاوت دې ته مکروه ويلي دي نو د امام صاحب قول کې به دا تفصيلي وي چې د اولې ورځې د قراءت منکر نه دي ، وروسته به د قراءة په کراهيت قول کوي :

حاشية على مراقي الفلاح شرح نور الايضاح جلد ۱ صفحه ۴۱۳ :

**واخذ من ذلك جواز القراءة على القبر و المسئلة ذات خلاف قال الامام تكره لان اهلها جيفة ولم يصح فيها شيء عنده عنه صلى الله عليه وسلم.**

او ده ته په دې کې د نبي علیه السلام نه څه صحيح روايت نه وه ثابت شوې .

**وقال لمحمد تستحب لورود الاثار.** حديث پرې راغلې دي .

**وهو المذهب المختار.** په حنفي فقه کې مذهب مختار د امام محمد رحمه الله دې چې تلاوت جائز دي **كما صرحوا به في كتاب الاستحسان .**

دارنګې التاج والاكليل جلد ۲ صفحه ۳۷۴ :

**استدل بعض العلماء على استحباب القراءة على القبر لحديث الجريدتين .**

د هغې نه استدلال داسې کوي چې هر کله د لختي ثواب رسيږي نو د تلاوت څنګه نه رسيږي .

**وقاله الشافعي وفي الاحياء لا بأس بالقراءة على القبور .**

دارنګې منح الجليل شرح مختصر سيد خليل جلد ۳ صفحه ۱۷۶ :

**ان قرأ الرجل ووهب ثواب قراءته لميت جاز ذلك وحصل للميت اجره ان شاء الله تعالى .**

دارنګې الانصاف جلد ۲ صفحه ۳۹۱ :

**ولا تكره القراءة على القبر في اصح الروايتين .**

مکروه نه دي قراءت په قبر باندې اصح روايتينو کې .

**وهذا المذهب قاله في الفروع وغيره .** دا مذهب د امام احمد رحمه الله يادوي .

**قاله الشارح هذا المشهور عن احمد .** د امام احمد رحمه الله مشهور قول دادی .

**قاله الخلال وصاحب المذهب رواية واحدة لا تكره .** هغه دا وايي چې امام احمد صاحب همدا يو قول کړې چې مکروه نه دي .

**وعليه اكثر الاصحاب منهم القاضي وجزم به في الوجيز وغيره وقدمه في الفروع والمغني**

والشرح وبن تميم والفائق وغيرهم .

دارنګې تذکرة للقرطبي جلد ۱ صفحه ۸۴ :

باب ماجاء في قراءة القران عند القبر حالة الدفن وبعده وأنه يصل الى الميت ثواب مايقرأ ويدعي ويستغفر له ويتصدق عليه .

دارنګې مصنف ابن ابي شيبة جلد ۳ صفحه ۲۳۷ :

حدثنا وكيع عن سفيان عن حسان بن ابراهيم عن امية الازدي عن جابر بن زيد انه كان يقرأ عند الميت سورة الرعد .

دارنګې مصنف ابن ابي شيبة جلد ۳ صفحه ۲۳۶ :

حدثنا حفص بن غياث عن المجالد عن الشعبي قال كانت الانصار .

وه انصار د مديني منورې .

يقرأون عند الميت سورة البقرة . مړي ته به يې سورة بقره لوسته .

دارنګې تفسير مظهري جلد ۱ صفحه ۳۷۳۴ دا هغه ايات دي : ﴿وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ﴾ :

واخرج الخلالي عن الشعبي كانت الانصار اذا مات لهم الميت .

وه انصار د مديني منورې کله چې به مړې وشو .

اختلفوا الى قبره . مختلفې ورځې به يې قبر ته تلل .

يقرءون القرآن . قرآن كريم به يې لوستلو نو داد انصارو د مديني منورې رواج وه .

و في الاحياء عن أحمد بن حنبل اذا دخلتم المقابر فاقرأوا بفاتحة الكتاب والمعوذتين وقل هو الله احد واجعلوا ذلك لأهل المقابر فانه يصل اليهم .

دارنګې البحر الرائق جلد ۵ صفحه ۳۸۳ :

ولا بأس بقراءة القرآن عند القبور وربما تكون افضل من غيره .

د بل عمل نه دا افضل دي .

ويجوز ان يخفف الله عن أهل القبور شيئاً من عذاب القبر او يقطعه عند دعاء القاري و تلاوته وفيه ورد آثار من دخل المقابر فقرأ سورة يس خفف الله عنهم يومئذ وكان له بعدد من فيها حسنات .

ده لره به دومره اجروي چې دا مقبره کې څومره مړي وي او په هغوي به تخفيف راشي.

دا رنګې عمدة القاري جلد ۴ صفحه ۴۹۷ :

لما روي أبو بكر النجار في كتاب السنن عن علي بن ابي طالب رضي الله عنه ان النبي صلى الله عليه وسلم قال من مر بين المقابر .

څوک چې مقبره کې روان وي .

فقرأ قل هو الله احد أحد عشر مرة ثم وهب أجرها للأموات أعطي من الأجر بعدد الاموات .

دا رنګې بل روايت پيش کوي :

عن انس يرفعه . مرفوع روايت پيش کوي .

من دخل المقابر فقرأ سورة يس خفف الله عنهم يومئذ وعن ابي بكر الصديق رضي الله عنه قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من زار قبر والديه او احدهما .

څوک چې د مور او پلار قبر ته لاړ .

او احدهما فقرأ عنده او عندهما يس غفر له .

دا رنګې شرح الكبير لابن قدامة جلد ۲ صفحه ۴۲۵ :

ابن قدامة الجوهري يا ابا عبد الله ما تقول في مبشر الحلبي .

دا هغه ابن قدامة الجوهري چې امام احمد صاحب ته ويلې وه او امام احمد صاحب وويل . ثقة .

قال فاخبرني مبشر عن أبيه أنه أوصى إذا دفن أن يقرأ عنده بفاتحة البقرة وخاتمتها وقال سمعت ابن عمر رضي الله عنه يوصي بذلك فقال احمد بن حنبل فارجع فقل للرجل يقرأ وقال الخلال

حدثني ابو علي الحسن بن الهيثم البزار شيخنا الثقة المأمون قال رأيت أحمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ يصلي خلف ضرير أيقرأ على القبور.

يو معروف حافظ وه چې هغه په مقبره کې په قبرونو تلاوت کولو او امام احمد صاحب به ده پسې مونځ کولو دا ددې لپاره وايي چې دده په نزد قراءت په قبرونو بدعت نه وه کنه د بدعتي پسې مونځ نه کولو.

وقد روي عن النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انه قال من دخل المقابر فقرأ سورة يس خفف عنهم يومئذ وكان له بعدد من فيها حسنات و روي ابو حفص بن شاهين عن انس قال قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ من قال الحمد لله رب العالمين رب السموات و رب الارض رب العالمين وله الكبرياء في السموات والارض وهو العزيز الحكيم لله الحمد رب السموات ورب الارض رب العالمين وله العظمة في السموات والارض وهو العزيز الحكيم مرة واحدة ثم قال اللهم اجعل ثوابها لوالدي لم يبق لوالديه حق الا اداه اليهما.

دا رنګې شرح الصدور بشرح حال الموتى د امام سيوطي رَحِمَهُ اللهُ جلد ۱ صفحه ۳۰۴:

وقال القرطبي في حديث اقرؤوا على موتاكم يس.

پس مړو ته يس شريف ولولي.

هذا يحتمل. دا احتمال لري.

ان تكون هذه القراءة عند الميت في حال موته. چې محتضر دي دا وايي هغې ته هم شامل دي.

ويحتمل ان تكون عند قبره. او احتمال لري چې قبر سره دا تلاوت شي.

قلت وبالأول قال الجمهور. دا اول قول جمهورو کړي اکثر محدثين دا وايي خو رد د ثاني په کې نه دي بلکه دا معنى اخلي.

كما تقدم في أول الكتاب وبالثاني قال ابن عبد الواحد المقدسي في الجزأ الذي تقدمت الاشارة. هغه وايي دا په هديره کې لوستل دي.

وبالتعميم في الحالين . چې دواړو ته شامل دي .

قال المحب الطبري من متأخري أصحابنا . چې شوافع دي .

وفي الاحياء للغزالي والعاقبة لعبد الحق عن احمد بن حنبل قال اذا دخلتم المقابر فاقرؤوا بفاتحة الكتاب والمعوذتين وقل هو الله أحد واجعلوا ذلك لأهل المقابر فانه يصل إليهم .

داد تلاوت متعلق په قبر باندې د دغو فقهاء عبارات وه او څوک یې چې منعه کښې دا ثابت نه دي بس د لا نسلم په غونډې ناست دي خو مونږ ورته ثابت کړو نو اوس دې ومني ثابت نه دي دده په علم ثابت شو په کتب الحدیث کې اوس دې ومني لکه امام احمد صاحب ته چې ثابت شو وي منه تسليم يې کړو .

نو دغه شان دوي ته هم تسليمول په کار دي او چې نه يې تسليموي هغوي پوه شه او کاريې پوه شه خو تاسو په دې کې خپله عقيده مه خرابوي مقبره کې تلاوت ممنوع نه دي دا جائز دي وړل د مصحف مقبرې ته که بې آدبي په کې نه وي جائز دي که د بې آدبي خطره وي په کې بيا يې وړل نه دي په کار هغه خارجي علت دي چې دې ته متوجه کيږي .

پاتې شوه مسئله د ختم چې داختم څنګه دي نو ختم په خپله امر جائز دي لکه راغونډيدل د خلکو د ختم لپاره دليل دې باندې حديث د دارمي دي باب ما جاء في ختم القرآن ، هلته د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث پيش کوي چې هغه به خپل اهل د ختم لپاره راغونډول نو اهل دده ۹۵ يا ۹۶ خامن وه او د هغوي بچي وه دا غټه اجتماع وه تقريباً ۱۵۰ کسان به راغونډيدل ختم به کيدلو .

او دارنګې د سعيد ابن المسيب د امام مجاهد اقوال هم په کې مذکور دي چې دُعا عند ختم القرآن مستجابه دې لپاره به دوي راغونډيدل دوي چې کوم اعتراض کوي چې داخويو تلاوت کوي هغه بل ورته غوږ نه ږدي او دا جرم دي نو دا ناپوهي ددوي ده خارج د صلواة نه تلاوت ته غوږ کينښودل فرض نه دي بلکې مستحب دي او تلاوت هم مستحب دي .

نو که يو تلاوت کوي نور غوږ ږدي هم عمل مستحب دي او که ټول لګيا کيږي تلاوت کوي هم عمل بالمستحب دي خو ښه طريقه داده چې د جمع واري په وخت کې تلاوت خفيه وشي چې ترک د يو مستحب هم په کې رانه شي او عمل په کل مستحب باندې راشي او که دا

اعتراض کوي چې ختم ځکه ناروا دي چې د تلاوت په وخت کې يو بل ته غوږ نه ږدي نو لهذا دلته خو غټ جرم راغي چې قرآن کريم ته غوږ کې نه ښودل شو .

نو زه به ستاسو اعتراض را تاو کړمه مدرسې د حفظ القرآن ته او س به مدرسه کې سبق ويل هم ناروا دي هلته خو دومره شور وي چې يو هم بل ته غوږ نه ږدي او دليل په ختم باندې د مسلم هغه حديث دي چې :

وما اجتمع قوم في بيتٍ من بيوت الله . نشته يو قوم چې را غونډ شي .

في بيت من بيوت الله يتلون كتاب الله و يتدارسونه بينهم الا نزلت عليهم السكينة وغشيتهم الرحمة وحفتهم الملائكة وذكرهم الله فيمن عنده .

چيرته به يو قوم اجتماع جوړه نه کړي مگر که جوړه يې کړه په دري کارونو باندې يو تلاوت دي بل ذکر دي او بل تدريس دي نو ځلور اجره هغوي ته ملاويږي هغه دليل عام دي لپاره دليل دي چې تلاوت باندې اجتماع ممنوع نه ده :

وما من قوم اجتمع في بيت من بيوت الله يتلون كتاب الله .

نو دا اجتماع على التلاوة ده او اجتماع على التلاوة صورة د ختم دي ددې خو بله څه لاره نشته ده کوم صورت ده چې ختم نه وي او اجتماع په تلاوت راغلې وي او نبي عليه السلام هغې لپاره ځلور اجرونه ښايي بدعت ورته نه وايي او نه ورته ناروا وايي .

**په دې ځای باندې اول جلد ختم شو والحمد لله**

**طالب دعاء : سيد محمد ثواب باچا**

**او**

**مولوي سيد راز محمد هاشمي ثم الاندړوړي**

المكتبة الخادمية

انقلاب روډ سوريزئي پايان پېښور

